إدارة أوقاف
صالح عبدالعزيز الراجحي

# د روژي
# مسائل او فضائل

مرتب ومترجم
## حافظ نور أحمد دين

**المكتب التعاوني للدعوة والإرشاد وتوعية الجاليات**
**بغرب الديرة (الرياض)**


طبع على نفقة إدارة أوقاف
صالح بن عبدالعزيز الراجحي
غفر الله له ولوالديه ولذريته ولجميع المسلمين
www.rajhiawqaf.org

يهدى ولا يباع

بسم الله الرحمن الرحيم

*الحمد لله رب العالمين، والصلاة والسلام على نبينا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين، وبعد:*

محترمو مسلمانانو وروڼو: دا يوه مختصره رساله ده، پدي کي د روژې احکام، فضائل، او هغه څه ذکر شوي دي کوم چه د مسلمان لپاره په رمضان کي پکار وي.

د الله تعالى نه سوال کوو. چه د دي رسالي په ذريعه مسلمانانو ته فائده ورسيږي.

## د روژې تعريف:

د صباح د راختلو نه تر ماښام نمر پريوتلو پوري صرف د الله د رضا لپاره د خوړلو، څکلو، او همبستري «جماع» نه ځان ساتلو ته روژه وائي.

## د روژې حکم:

د رمضان په مياشت کي روژه نيول د اسلام د بنيادي ارکانو نه يو رکن دي، لکه چه په حديث کي راغلي دي «**بُني الإسلام على خمسٍ: شهادة أن لا إله إلا الله وأن محمداً رسول الله، وإقام الصلاة، وإيتاء الزكاة، وصوم رمضان**

**وحج البيت الحرام»** [متفق عليه].

ترجمـه: اسلام په پنځو شيونو جوړ شـوى دي: گواهي كول پدي چه نشتـه بل مـعبـود په حـقـه مگر يو الله دي، او محمد ﷺ د الله رسول دي، صحيح مونځ كول، زكات وركول، د رمضان روژه نيول، د بيت الله حج كول.

## روژه په چا فرض ده او په چا فرض نه ده:

١ – په هر هغه مسلمان باندي چه بالغ وي، عاقل وي، په روژه قادر وي، او مقيم وي، روژه فرض ده.

٢ – په كافر روژه فرض نه ده او كله چه مسلمان شي نو د تيرو روژو قضاء پري لازم نه ده.

٣ – په ماشوم روژه فرض نه ده ليكن كله كله به د روژي نيولو حكم ورته كيږي د دي لپاره چه عادت واخلي.

٤ – په ليوني نه روژه فرض ده او نه د روژي فديه اگر كه بالغ وي، همدارنگه هغه معتوه (بي عقله) چه د سبه بد په مينځ كي فرق نه شي كولي، همدارنگه په هغه سړي چه گډي وډي خبري كوي د صحيح او غلطو خبرو فرق نه شي كولي.

٥ – هغه انسان چه په مستقل طور سره د روژي نه عاجز وي په يو سبب سره، لكه ډير زيات سپين گيري يا هغه مريض چه د روغوالي اميد يي نه وي، دا قسمه خلق به

د روژي د هري ورځ په بدل کي يو مسكين ته خوراك وركوي.

٦ – هغه مريض چه عارضي ناروغه وي او د روغتيا په انتظار وي، كه روژه نيول ورته گران (سخت) وي روژه به ماتوي، او بيا به يي قضاء راوړي.

٧ – هغه اُميد واره (حامله) او تي وركونكي ښځه چه په هغو روژه نيول مشكل وي د حمل او تي وركولو په سبب، يا په خپل بچي ايريدلي پدي صورتونو كي به روژه ماتوي، او چه كله ئي عذر رفع شي قضاء به راگرزوي.

٨ – حائضه (ماهانه بيماري واله) او نفساء (ځلويښتيء واله) ښځي به روژي نه نيسي په حالت د حيض او نفاس كي، او چه كله روغي شوي قضاء به راگرځوي.

٩ – هغه انسان چه مجبوره شي روژي ماتولو ته لكه څوك اوبو راخيستي وي او دا يي خلاصول غواړي يا څوك په اور كي حصار وي. پدي صورتونو كي كه روژه ماتول ضروري وو نو روژه ماتولي شي خو بيا به يي قضاء راوړي.

١٠ – مسافر له روژه نيول او نه نيول دواړه جائز دي، كه سفر يي مستقل وي لكه د ټريلو واله چه اكثر وخت يي په سفر وي يا يي سفر عارضي وي لكه د عُمري سفر،

په ټولو صورتونو کې ورله روژه ماتول جائز دي تر څو چه په خپل ښار کې نه وي.

## روژه په څه نه ماتيږي:

١ – کله چه روژه دار يو شي أُوخري په هيره سره ، يا ناپوهيء سره، يا پري څوك زور راولي، نو روژه يي نه ماتيږي، ځکه چه الله فرمائي: ﴿ربنا لا تؤاخذنا إن نسينا ، أو أخطأنا﴾. [البقرة: ٢٨٦]

ترجمه: «اي زمونږ پالونکيه ته مه نيسه مونږ که چيري هير کړه مونږ يا خطاء شو»،.

همدارنگي فرمائي: ﴿إلا من أكره وقلبه مطمئن بالإيمان﴾ [النحل: ١٠٦].

ترجمه: «مگر هغه څوك چه زور پري راوستل شو، او زړه يي په ايمان مطمئن وو».

٢ – که چيري روژه دار څه وخوړل، پدي خيال چه نمر پريوتي دي، يا پدي خيال چه کني صباح نه دي ختلي. نو روژه يي نه فاسديږي ځکه چه دا ناپوهه دي.

۳ - کـه چيـري يي مـضـمـضـه وکـړه، او اوبه يي حلق ته ورسيـدلي روژه يي نه ماتيږي، ځکه چه قصد او اراده يي نه ده کـړي، کـه چيـري په خـوب کي پري اودس واوختلو روژه نه فاسديږي ځکه چه دا په خپل اختيار کي نه دي.

## روژه ماتونکي اته دي:

۱ - جماع «همبستري» کله چه د رمضان په ورځ کي روژه دار جـمـاع وکـړي نو په هـغي قـضـاء هم لازمـه ده، او ورسره سختـه کفاره هم يعني غلام آزادول، که دا نه وو نو دوه مياشتي پرله پسي روژه نيـول، که د دي طاقت يي نه وو، نو شپيته مسکينانو ته خوراك ورکول.

۲ - په ويښـه خـپل مَنِي ايسـتل، د لاس په ذريعـه يا د چا سـره د سـملاسـتـو په ذريعـه يا د ځکلولو يا ځان ته د نژدي کولو په ذريعه.

۳ - خـوړل يا سکل د يو شـي، برابره خـبـره ده کـه انسـان ته نفعه رسوي لکه ډوډي اوبه، يا تاوان لکه سگرټ.

٤ - هـغـه ډريپ يا انجکشن لگول چه د هـغي په سبب خوراك ته ضرورت نه راځي، ليکن کومه ستن او انجکشن چه د خوراك فـائده نه ورکوي په هـغي روژه نه مـاتـيږي کـه د

غوخې وي او که د رګ، اګر که په حلق کې یې خوند بیامومي.

٥ – خپل ځان ته د بل چا نه وینه خیژول.

٦ – د حیض او نفاس وینه وتل.

٧ – ښکر لګول، یا بل ته وینه ورکول. لیکن د پوزې یا د غاښ نه وینه وتلو باندې روژه نه ماتیږي.

٨ – قې (اُلټي) کول قصداً. که بغیر د قصد نه پخپله اُلټي راغلې په هغې روژه نه ماتیږي.

## فایدې:

١ – د روژه دار لپاره جائز دي چه د جنابت په حالت کې د روژې نیت وکړي او غسل د صباح ختلو نه روسته وکړي.

٢ – کله چه د حیض یا نفاس واله ښځه د خپلې بیمارې نه د صباح ختلو نه مخکې پاکه شوه په هغې روژه فرض ده. اګر که غسل یې د صباح نه روسته وکړه.

٣ – روژه دار له د روژې په حالت غاښ ایستل، د زخم دوایې کول، په غوږ یا پوزه کې دوایې اچول جائز دي. اګر که خوند یې په حلق کې محسوس کړي.

٤ – مسواک وهل د روژې په صباح، غرمه، ماښام ته نژدې،

په هر حالت کې جائز دي.

٥ – د روژه دار لپاره جائز دي چه د خپل ځان نه گرمي کمه کړي په اوبو سره يا په مکيف (ايرکنډيشن) سره.

٦ – کوم روژه دار چه د سابندي تکليف لري هغي له جائز دي چه د ټوپ «بخاخ» په ذريعه خپله سابندي آزاده کړي.

٧ – جائز دي د روژه دار لپاره چه خپلي شونډي لمدي کړي يا مضمضه وکړي که خوله يي وچه وي. ليکن غړغړه به نه کوي.

٨ – د روژه دار لپاره د چربانگي (پيشمني) وروسته کول. او په روژه ماتي کي جلتي او بيړه مستحب ده کله چه نمر پريوزي. همدارنگي په تازه کجورو روژه ماتول. که نه وي په وچو کجورو. که هغه نه وي په اوبو باندي روژه ماتول مستحب دي. که اوبه نه وي نو په هر قسمه حلال طعام دي افطار وکړي. که طعام نه وو. په خپل زړه کي دي د روژه ماتي نيت وکړي. تر دي چه خوراك پيدا شي.

٩ – د روژه دار لپاره سنت دي چه ډيري نيکياني کوي او د بدو کارونو نه ځان ساتي.

١٠– په روژه دار فرض دي چه‌دفرائضو هميشه والي وکړي

او د حرامو نه ځان وساتي. پنځه مونځونه د جماعت سره وکړي. که په جماعت قادر وو. او دروغ، غیبت، دوکه او سودي کارو بار پرېږدي. او هغه خبري او کار پرېږدي کوم چه حرام وي. لکه چه رسول الله ﷺ فرمائي: «**من لم يدع قول الزور والعمل والجهل به، فليس لله حاجة في أن يدع طعامه وشرابه**» [البخاري] کوم چا چه دروغ خبري، او په دروغو عمل او بي صبري پري نه خودلي. د دي انسان خوراك سكاك پري خودلو ته د الله هيڅ حاجت نه شته.

## د روژې فائدې:

١ – د روژه دار د خلې بوي الله تعالى ته د مشكو نه ډير خوښ دي.

٢ – ملائك روژه دارو لپاره تر روژه ماتي پوري ښښنه غواړي.

٣ – الله تعالى هره ورځ جنت ښائسته كوي او ورته وايي قريبه ده چه زما د نيكانو بندګانو نه تكليفونه او سختي لري كړاي شي او تا له راشي.

٤ – پدي مياشت كي شيطانان تړل كيږي.

٥ – پدي مياشت كي د جنت دروازي برسيره كيږي او د جهنم دروازي بنديږي.

٦ – پدې میاشت کې لیلة القدر «شب قدر» ده چه هغه د زرو میاشتو نه غوره ده څوك چه پدې شپه کې د خیر او ثواب نه محروم شو دا د ټول خیر نه محروم شو.
٧ – د رمضان په آخري شپه روژه دارو ته بښنه کیږي.
٨ – د رمضان په هره شپه د الله تعالی له طرفه له جهنم نه خلق آزادیږي.

مسلمانه وروره! د کومې میاشتې چه دا فضائل او خاصیتونه وي. نو مونږ به په څه شي سره د هغې استقبال کوو؟ آیا په بې هوده خبرو بې خوبې او بې فائدې شب ګیرې سره؟ او یا دا چه د دې په راتللو سره چیغې فریادونه شروع کړو او د یو غټ بوج خیال پرې وکړو؟ بلکه صحیح مسلمان د رمضان استقبال په خالصې توبې سره کوي او کلك عزم کوي چه دا به د ځان لپاره یو فرصت شمیرم. او خپل وختونه به په خو اعمالو جوړوم.

## په رمضان کې ضروري کارونه:

١ – روژه نیول. رسول الله ﷺ فرمائلي دي: «د بني آدم هر عمل د هغې لپاره دي یعني «یو څه ظاهري یا باطني فائده ورته حاصلیږي» ....

الله فرمائي مګر روژه داسې نه ده. دا صرف زما لپاره

ده او زه به پخپله د دي بدله ورکوم . [البخاري ومسلم].

په بل حديث كي رسول الله ﷺ فرمايي: چا چه د رمضان روژه صرف د ايمان او ثواب لپاره ونيوله. نو تير شوي گناهونه به ورته معاف شي» [بخاري].

او پدي كي شك نه شته چه دا دومره ډير ثوابونه د هغه سړي لپاره نه دي چه هغه فقط د خوراك سكاك نه منع شي بلكه رسول الله ﷺ خو فرمائلي دي:

ترجمه: كوم څوك چه په روژه كي دروغ خبري د دروغو كار او بي صبري پري نه دي. نو د دي خوړل او څكل پريښودلو ته د الله تعالى هيڅ حاجت نه شته. [البخاري].

همدارنگي رسول الله ﷺ فرمائلي: روژه ډال دي. نو كله چه ستاسي د يو كس روژه وه نو نه دي بي حياء خبري كوي نه دي گناه كوي، او نه دي بي صبري كوي. كه چا ورته كنځل وكړل. ورته دي ووايي: چه زه روژه يم [بخاري ومسلم].

نو اي د الله بنده! كله چه تا روژه ونيوله پكار ده چه ستا غوږونه، سترگي او ژبه او ټول اندامونه روژه ونيسي. او ستا د روژي او بوزي ورځ دي برابره نه وي. لكه دارنگه د حضرت جابر بن عبد الله نه په روايت كي راغلي دي.

## د شپې مونځ :

رسول الله ﷺ فرمايي چا چه په رمضان کي قيام (تراويح او تهجد) وکړه دي ته به تير شوي گناهونه معاف شي [بخاري ومسلم]

دا يوه اهمه ياد دهاني ده، مسلمانه وروره تا له پکار دي چه د امام سره تراويح پوره کړي د دي لپاره چه د قائمينو (تهجد گذارو) سره وليکل شي. ځکه چه رسول الله ﷺ فرمائلي: «څوك چه د خپل امام سره يو ځاي قيام (مونځ د شپي) وکړي تر دي پوري چه امام واپس شي. د دي لپاره به د ټولي شپي مونځ وليکل شي. [السنن].

## صدقه ورکول:

«رسول الله ﷺ د ټولو خلکو نه زيات سخي وو. او بيا به د هر وخت نه زيات په رمضان کي ډير سخي وو تر دي چه د خير په لحاظ به د ليگل شوي سيليء نه هم ډير سخي وو».
[متفق عليه]

همدارنگي رسول الله ﷺ فرمائلي دي: «غوره صدقه هغه ده چه په رمضان کي وي» [ترمذي]

بيا د دي صدقي مختلف صورتونه او قسمونه دي:

١ – په چا باندي خوراك خوړل. الله تعالى فرمائلي دي: «دا نيكان هغـه خلك دي چه د مـيني واله خـوراك وركـوي،

مسکین، یتیم او قیدي ته، وائي چه مونږ درله صرف د الله رضاء لپاره خوراك درکوو. ستاسي نه بدله او شکر نه غواړو مونږ د خپل پروردګار نه د هغي ورځي (د عذاب نه) ویریږو کومه چه د پریشاني او سختي ورځ ده. نو الله دوي د دي ورځي د سختي نه بچ کړل. او خوشحالي او تازګي یي ورته ورسوله او دوي له یي د دوي د صبر په بدله کي جنت او ریښمني لباس ورکړه» [الإنسان: ۸ - ۱۲].

د دي وجهي نه سلفو صالحینو به بل له خوراك ورکولو کي ډیر کوشش او حرص کولو او دا کار به یي په ډیرو عباداتو وړاندي کولو بیا دا خوراك برابره خبره ده که وږي ته ورکړل شي او یا یو نیك صالح ملګري ته ځکه چه طعام چا له ورکول کیږي هغه کي فقر شرط نه دي رسول الله ﷺ فرمائلي دي: «کوم مؤمن چه بل وږي مؤمن ته طعام ورکړه الله به ورته د جنت د میوونه طعام ورکړي او چا چه په مؤمن اوبه وڅکولي الله به پري خالص تازه شراب وڅکي» [الترمذي]

د بعضو سلفو صالحینو دا حال وو چه په نورو مسلمانانو ورونو به یي خور اك خوړلو او پخپله به روژه وو. د هغو خدمت به یي کولو او هغوي ته به یي آرام رسولو. چه د دوي د جملي نه یو حسن البصري او عبد الله بن مبارك وو.

ابو سوار عدوي فرمایي: د بنو عدي بعض خلك څه

داسي وو چه پدي جماعت كي به يي مونځ كولو او يو كَسْ پدوي كي به په طعام يواځي روژه نه ماتوله كه څوك به يي بياموند د هغي سره به يي يو ځايي خوراك كاوه. او كه څوك به نه وو خپل خوراك به يي جماعت ته ويستلو د خلكو سره به يي شريك د يو بل طعام خوړلو.

بل له خوراك وركول يو داسي عبادت دي چه د دي نه نور ډير عبادتونه پيدا كيږي. د دي د جملي نه يو محبت او مينه جوړيدل د هغه ورونو سره په كومو چه تا خوراك كړي دي. او دا د جنت د تللو سبب دي لكه حديث كي راغلي دي: «جنت ته تر هغي نه شي تللي تر څو چه مو ايمان نه وي راوړي. ايمان تر هغه نه شي راوړلي تر څو مو د يو بل سره محبت نه وي كړي» [مسلم].

همدارنګي د طعام وركولو په ذريعه د نيكانو مجلس انسان ته نصيب كيږي ورسره ستا د طعام په ذريعه چه هغه نيكانو ته د اطاعت لپاره كوم قوت ور په برخه كيږي په هغي كي هم ستا ثواب كيږي.

## روژه دار له روژه ماتي وركول:

رسول الله ﷺ فرمائلي دي: «چا چه په روژه دار روژه ماته كړه نو دده د روژه دار هُمره ثواب كيږي ليكن د هغي په اجر كي څه كمي نه راځي.

## په تدبر (سوچ) سره د قرآن کریم تلاوت کول:

مسلمانه وروره! په کار ده چه په سوچ فکر او عاجزي سره د قرآن تلاوت وکړي ځکه چي سلف (پخواني بزرګان) به په تلاوت ډیر متأثره کیدل.

امام بیهقي د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت نقل کړي چه کله دا آیت نازل شو. «آیا پس تاسي د دي وینا نه تعجب کوي. او خاندي او ژاړي نه» [النجم: ٥٩ - ٦٠].

اهل صفي والو دومره وژړل چه اوښکي یي په اننګو رواني شوي. کله چه رسول الله ﷺ د دوي سلګي واوریدلي نو ویي ژړل نو د هغي په ژړا مونږ هم وژړل. بیا رسول الله ﷺ وفرمائل: چا چه د الله د ویري نه وژړل هغه به جهنم ته نه ننوزي.

## د نمر ختلو پوري جماعت کي کیناستل:

د رسول الله ﷺ دا عادت وو چه کله به یي د سحر مونځ وکړ نو په خپل جاي نماز به تر نمر ختو پوري ناست وو.[مسلم]

همدارنګي د ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دي چه رسول الله ﷺ فرمائلي: «څوک چه د سحر مونځ د جماعت سره وکړي بیا کیني او الله یادوي تر دي چه نمر راوخیژي

بيا دوه ركعته مونځ وكړي د دي لپاره د يو حج او عمري مكمل، مكمل، مكمل ثواب دي» [ترمذي صححه الباني].

دا خو په عامو ورځو كي دي نو د رمضان د ورځو به لا څه حال وي؟

## اعتكاف (چهله) كول:

رســول الله ﷺ به په رمضــان كي لس ورځي اعـتكاف كولو، په كوم كال چه وفات كيدو. په هغي كال يي شل ورځي اعتكاف وكړ. [بخاري]



## عمره كول:

د رســول الله ﷺ نه ثابت دي چه عمره كول په رمضان كي د حج د ثواب سره برابريږي. [بخاري ومسلم].

## د ليلة القدر تالاش :

الله تعـالى فـرمائـي: (ترجمـه): «دا قـرآن مـونږ د قـدر په شپه نازل كړي، ته څه پوهيږي چه د قدر شپه څومره شان واله ده، د قدر شپه د زرو مياشتو نه غوره ده» [القدر : ١ - ٣]

رســول الله ﷺ فرمـائلي دي: «چا چه د قـدر په شپه صرف د ايمان په وجـه او د ثواب لپاره قيام (نفلونه وكړل) تير شوي گناهونه به ورته معاف شي [بخاري ومسلم].

رسول الله ﷺ به د ليلة القدر تالاش كولو، او اصحابو ته
به يې د هغې د تالاش امر كولو. او خپل اهل به يې په آخري
لسو شپو كې راويښول، پدې اُميد چه د قدر شپه به
بياموميِ، او دا شپه په آخري لسو شپو كې ده، او بيا خاص
طور سره په طاق شپو د لسو كې ډيره مناسب ده مُندلو ته.
حضرت عائشه رضي الله عنها فرمائي چه ما د رسول الله
ﷺ نه تپوس وكړ، كه زه د قدر شپې سره موافقه وكړم
يعني لاندې يې باسم، نو كومه دُعا به وايم؟ رسول الله ﷺ
وفرمائل: (أَللّٰهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّي) [أحمد وترمذي].
ترجمه: أي الله ته ښښنه كونكې يې ښښنه خوښوې نو ماته
ښښنه وكړه.

## ډير ذكر دُعا او استغفار:

مسلمانانو ورونو او خويندو د رمضان شپې ورځې ډيرې
غوره دي. نو پدې ورځو كې ډير ذكر او دعا فرصت وګڼي
بيا خاص طور په هغه وختونو كې چه په هغې كې سوال
قبليږي چه د هغې له جملې نه:

١ – د روژه ماتي وخت دي . ځكه د روژه دار لپاره پدې
وخت كې يو خاص وخت وي چه په هغې كې دعا نه
واپس كيږي.

۲ – د شپې آخري دريمه حصه په کوم وخت کې چه زمونږ رب ذو الجلال نازليږي او وايي: آيا څوك غوختونكي شته چه سوال يي وركړم: آيا څوك ببښنه غوختونكي شته چه بخنه ورته وكړم.

۳ – د چربانګ په وخت کې بخنه غوختل الله فرمائي: ترجمه: «مؤمنان په چربانګ کې د الله نه بخنه غواړي» [الذاريات]

د جمعي په ورځ د دعا قبليدولو د وخت لټون كول. او مناسب وخت يي د جمعي د ورځې آخري ساعت دي.

## هغه مخالفات د كومو نه چه په روژه کې ځان ساتل په كار دي:

۱ – د شپې نه ورځ او ورځې نه شپه جوړول يعني ټوله ورځ خوب او شپه کې شب ګير.

۲ – د بعضي فرضي مونځونو نه ويده كيدل.

۳ – په خوړلو او سكلو کې زياتي كول.

۵ – بي فائدي وخت ضائع كول.

٦ – چربانګي ډير د وخته كول او بيا د سحر مانځه نه وړاندي ويده كيدل يعني مونځ پريښودل.

۷ – كله چه د روژه ماتي وخت نژدي وي نو په تيزه ګاډي چلول.

۸ – د تراويح مونځ پريښودل.
۹ – د بي فايدي لوبو، ساعت تيري، او گناهونو لپاره د ځوانانو جمع کيدل.
۱۰– د ډيوټي او وظيفي په وخت کي د کار د ملگرو سره جمع کيدل او وخت په غيبت او چوغليء تيرول.
۱۱– د ښځي اکثر وخت په أخلي پخلي تيريدل.

مسلمانه وروره! بحث خو اوږد شو ليکن يوه اهمه خبره چه هغي ته توجه ضروري ده هغه اخلاص او د نيت صفائي ده يعني روژه صرف د الله د رضا لپاره نيول، ځکه خو وايي چه ډير ځل روژه دار ته په روژه کي د تندي او لوږي نه علاوه نور څه (ثواب) نه حاصليږي. او همدا وجه ده چه په حديث کي کله هم د روژي ثواب ذکر کيږي نو دا شرط ورسره شامل وي چه: «ايماناً واحتساباً» يعني روژه به صرف په الله باندي د ايمان او د ثواب لپاره نيسي: د الله تعالى نه سوال کوو چه مونږ او تاسو ته په قول او عمل ښکاره او پټه کي اخلاص نصيب کړي.

په هر رمضان کي د الله له طرف نه آواز کيږي چه: اي د خير غوښتونکيه، متوجه شه: اي د شر لټونکيه: کمي وکړه په شر کي: لهذا مسلمانه وروره دا لږ عمر ځان ته فرصت وشميره، لږ سوچ وکړه، په تير شوي رمضان کي ډيرو خلکو

زمـونږ سـره روژې نـیـولـي وي لیکن اوس هـغـوي چیـرې دي ډیرو خلکو زمونږ سره تراویح کړې وي، فکر وکړه چه هغوي چیـرې تللي دي؟ بعـضـي له دوي نه مـرگ ناڅـاپه ورك کـړل بعضي ناروغه شول چه د روژو او تراویح طاقت نه لري. لهذا ته د الله شکر اداء کړه او ځـان له د تقـوا توخـه برابره کـړه تر څـو چه ده ته مـهلت او فـرصت وي. ډیر خلق د هـغـه دُعـا گانو په باره کي تپوس کوي کومي چه د تهجد په مانـځه کي ویلي کیږي:

لاندي د بعضو دُعاگانو ذکر کیږي:

## ۱ – د رکوع دُعاء :

رسول الله ﷺ فرمائي: «په رکوع کي د خپل رب لويي او تعظيم بيـان کـړيء. [مـسلم] نو مـونږ به وايو: **سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ**: «پاك دي لوي پروردگار زمـا» دري ځله يا زيات، يا: **سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ وَبِحَمْدِهِ**: «پاك دي لوي پروردگار زما او د هغي تعريف دي» بيا د دي نه روسـته دا لاندي اذکارو کي يو غـوره کـړه: **(سُبْحَـانَكَ اللَّهُمَّ رَبَّنَا وَبِحَمْدِكَ اللَّهُمَّ اغْفِرْلِي)** «اي الله زمونږ پروردگاره ته پاك يي او ستـا تعريف دي، اي

الله ما ته بښنه وکړي» (اللَّهُمَّ لَكَ رَكَعْتُ، وَبِكَ آمَنْتُ، وَلَكَ أَسْلَمْتُ، أَنْتَ رَبِّي، خَشَعَ لَكَ سَمْعِي وَبَصَرِي وَمُخِّيْ وَعَظْمِيْ وَعَصَبِيْ وَمَا اسْتَطَعْتُ وَمَا اسْتَقَلَّتْ بِهِ قَدَمِي لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ) - (سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلاَئِكَةِ وَالرُّوحِ) (سُبْحَانَ ذِي الْجَبَرُوتِ وَالْمَلَكُوتِ وَالْكِبْرِيَاءِ وَالْعَظَمَةِ).

«اي الله ستا لپاره ما رکوع وکړه، په تا مي ايمان راوړي، او ستا تابع يم، ته زما پروردګار يي، ستا نه ويريدل او عاجز شو زما غوږونه، او زما سترګي، زما دماغ، زما هډوکي، زما پلي (وژي)، او هغه څه چه زما په طاقت کي وي، او هغه جسم کوم چه زما قدمونو اوچت کړي دي خاص د الله د پاره چه پروردګار د عالم دي. ډير زيات پاك او مقدس دي د فرشتو او روح (جبريل) رب»

## ۲ – هغه دُعا چه د رکوع نه روسته په «قومه» کې ویل کیږي:

**ربَّنَا لَكَ الْحَمْدُ** یا: **ولَكَ الْحَمْد** یا: **اللَّهُمَّ ربنا ولك الحمد**.

«اې زمونږ پروردګاره خاص تا له ټول تعرفونه دي» د دې نه روسته په لاندې دعاګانو کې ځانله دعا خوښه کړه: «**ربَّنَا ولَكَ الْحَمْد حَمْداً كَثِيْراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيهِ كَمَا يُحِبُّ رَبُّنَا ويَرْضَى**» «اې زمونږ ربه او ستا لپاره تعریفونه دي ډیر، پاك، په هغوې کې برکت دې، څرنګه یې چه زمونږ رب خوښوي او خوشحالیږي پرې» یا ورسره دا هم زیاته کړه: «**مِلْءَ السمٰوات وَمِلْءَ الارض وَمَا بينَهُمَا وَمِلْءَ مَا شِئْتَ مِنْ شَيْءٍ بَعْدَه، أهْلَ الثَّنَاءِ والمَجْدِ، أحَقُّ مَا قَالَ العَبْدُ، وكُلُّنَا لَكَ عَبْدٌ، اللَّهُمَّ لاَ مَانِعَ لِمَا أعْطَيْتَ وَلاَ مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ ولاَ يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الجَدُّ**، «تا له تعریف دې دومره چه ډك شي پرې آسمانونه، او زمکې، او هغه څه چه په مینځ د دوې کې دي، او ډك شي پرې هغه څه کوم چه ستا خوښ شي روسته له

دي، اي د صفتونو او لويي لايقه، د ټولو نه رښتني خبره کومه چه بنده کړي وي هم د هغه ده، مونږ ټول ستا بنده ګان يوو. اي الله ته چه څه ورکړي هغه څوك نه شي منع کولي، او ته چه څه منع کړي د هغي ورکونکي نه شته. ستا په دربار کي رُتبي واله ته د هغه رُتبه فائده نه شي ورکولي» دا بار بار وايه يا ورسره دا هم زيات کړه: **اللَّهُمَّ طَهِّرْنِي بِالثَّلْجِ والبَرَدِ، وَالمَاءِ البَارِدِ، اللَّهُمَّ طَهِّرْنِي مِنَ الذُّنُوبِ والخَطَايَا كَمَا يُنَقَّى الثَّوْبُ الأَبْيَضُ مِنَ الدَّنَسِ**».«اي الله پاك کړي ما (د ګناه نه) په واوري سره، په ګلي سره، په يخو اوبو سره، اي الله: پاك کړي ما د ګناهونو نه او د خطاګانو نه لکه څرنګه چه سپينه جامه د خيري نه پاکيدلي شي»

## د سجدي دُعا ګاني:

رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «هر چه سجده ده نو پدي کي د دُعا (غوختني) کوشش وکړي، لايق ده چه ستاسي دُعا قبوله شي». [مسلم]

بل حديث کې راغلي دي: کله چه انسان په سجده کې وي نو الله ته ډېر نژدې وي، نو په کې ډېره دُعا کوي. [مسلم]

نو په سجده کې به وايو: **سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى**: «پاك دي ډېر اوچت دي رب زما» درې ځله يا د دې نه هم زيات بار بار ويل، يا دا ووايه: **سُبْحَانَ رَبِّيَ الأَعْلَى وَبِحَمْدِهِ**. «پاك دي ډېر اوچت دي رب زما سره د صفتونو خپلو» درې ځله: «**سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّ الْمَلَائِكَةِ وَالرُّوحُ**».

«**اللّٰهُمَّ لَكَ سَجَدْتُ، وَبِكَ آمَنْتُ، وَلَكَ أَسْلَمْتُ، وأَنْتَ رَبِّيْ سَجَدَ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ خَلَقَهُ وَصَوَّرَهُ، فَأَحْسَنَ صُوَرَهُ، وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ فَتَبَارَكَ اللّٰهُ أَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ**».

«اې الله ما ستا لپاره سجده وکړه، په تا مې ايمان راوړې، تا ته تابع يم، ته زما رب يې، سجده وکړه مخ زما هغه ذات ته چه دا مخ زما يې پيدا کړې د هغې شکل يې جوړ کړې او ښکلې يې کړ شکل د مخ او برسيره يې کړا سترګې او غوږونه د هغې، نو د برکت والا دي الله چه ښه پيدا کونکې دي»

**«اللّـــهُمَّ اغْفِرْلِيْ ذَنْبِي كُلَّهُ دِقَّهُ وَجِلَّهُ وَأَوَّلَهُ وَآخِرَهُ وَعَلَانِيَتَهُ وَسِرَّهُ».**

«اي الله وبښـــه مـــا ته ټوله ګناه زمـــا لويه، وړه، اوله، روستني، ښکاره، او پټه»

**«سَجَدَ لَكَ سَوَادِيْ وَخَيَالِيْ، وَآمَنَ بِكَ فُؤَادِيْ، أَبُوْءُ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ، هذِيْ يَدِيْ وَمَا جَنَيْتُ عَلى نَفْسِيْ»**

«سجده وکړه ستا لپاره سوچ فکر زما، ايمان راوړي په تا زړه زما، اقرار کوم په هغه نعمت چه پر ما دي کړي دي. دا زما لاس دي او هغه څه چه ما په خپل ځان زياتي کړي دي».

**«سُبْحَانَ ذَا الْجَبَرُوتِ والْمَلَكُوتِ والكِبْرِيَاءِ والْعَظَمَةِ»**

«پاك دي الله د ډير زور خـاوند دي او د لوي بادشـاهي خاوند دي او د لويي او عظمت والا دي»

**«سُبْحَانَكَ اللّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لا إِلهَ إِلاَّ أَنْتَ»**

«اي الله ته پاك يي سـره د تعـريفـونو خـپلو، نه شتـه

بل معبود بر حق مگر ته یې»

**«اللَّهُمَّ اغفِرلِيْ مَا أسرَرْتُ وَمَا أعلَنتُ، اللَّهُمَّ اجعَلْ فِيْ قَلبِيْ نُوراً، وَاجعَلْ فِيْ لِسَانِيْ نُوراً، واجعَلْ فِيْ سَمعِيْ نُوراً، وَاجعَلْ فِيْ بَصَرِيْ نُوْراً، وَاجعَلْ مِنْ تَحتِيْ نُوراً، واجعَلْ مِنْ فَوقِيْ نُوراً، وَعَنْ يَمِيْنِيْ نُوراً، وَعَنْ يَسَارِيْ نُوْراً، وَاجعَلْ فِيْ نَفْسِيْ نُوْراً، وَعَظِّمْ لِيْ نُوراً».**

«اي الله وبښې ماته هغه څه (گناه) چه ما پټ او يا ښکاره کړي ده، اي الله زما په زړه کي رڼا پيدا کړې، زما په ژبه کي رڼا پيدا کړې، زما په غوږونو کي رڼا پيدا کړې، زما په سترگو کي رڼا پيدا کړې، زما لاندي، باندي، ښي، کڼ طرف ته رڼا پيدا کړې زما په نفس کي رڼا پيدا کړې او زما رڼا لويه کړې».

**«اللَّهُمَّ إنِّيْ أعُوذُ بِرِضَاكَ مِنْ سَخَطِكَ، وَأعُوْذُ بِمُعَافَاتِكَ مِنْ عُقُوبَتِكَ وأعُوذُ بِكَ مِنكَ لاَ أُحصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ أنتَ كَمَا أثْنَيتَ عَلَى نَفسِكَ». «اللَّهُمَّ اغفِرلِيْ مَا أسرَرتُ وَمَا أعلَنتُ».**

«اې الله زه ستا د غُصې نه پناه غواړم ستا په رضا سره او ستا د سزا نه ستا په عفو سره، او پناه غواړم ستا نه هم ستا په ذريعه، زه په پوره طريقه ستا تعريف نه شم كولې، ته هم هغه شان يې څرنګه چه د خپل تعريف كړې»

**د دوو سجدو په مينځ کې دُعا:**

**ربِّ اغْفِرْلِي.... ربِّ اغْفِرْلِي. ... ربِّ اغْفِرْلِي.** يا ورسره دا هم زيات ووايه (كوم چه په بل روايت كې راغلې او شيخ الباني قوي كړې) «**اللَّهُمَّ رَبِّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِي واجْبُرْنِيْ وارْفَعْنِي واهْدِنِي وَعَافِنِيْ وارْزُقْنِي**».

«اې الله زما ربه ماته بښنه وكړه، په ما رحم وكړه، زما نقصان پوره كړه، زما شان اوچت كړه، ماته هدايت وكړه، ماته روغوالې راكړه، ماته رزق راكړه»

**د تلاوت د سجدې دُعا:**

**سُبْحَانَ ربِّيَ الأعْلى، سَجَدَ وَجْهِيْ لِلَّذِي خَلَقَهُ، وَشَقَّ سَمْعَهُ وَبَصَرَهُ بِحَوْلِهِ وَقُوَّتِهِ، اللَّهُمَّ اكْتُبْ لِي بِهَا عِنْدَكَ أجْرًا، وَضَعْ**

تعالی ته ډیره عاجزي او فریاد کوه او سوال ترینه کوه د
مسلمانانو د نصرت لپاره او سوال کوه چه دوي سره په حق
متحد شي همدارنګه د خپل ځان لپاره او کور لپاره او د
عامو مسلمانانو لپاره د دنیا او آخرت د خیر سوال کوه، او
ورسره دا لاندي دعا ډیره وایه خاص طور په آخري لس
طاق شپو د رمضان کي لکه چه په حدیث د عائشي رضي
الله عنها کي راغلي دي: «**اللّٰهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ العَفْوَ فَاعْفُ
عَنِّيْ**» .

او په آخر کي اي مسلمان وروره او مسلماني خوري دد
ذکر شوؤ دُعا ګانو معاني او پدي کي سوچ او فکر ضرور
دي، لکه په حدیث کي راغلي: «الله هغه دُعا نه قبلوي کوم
چه د غافل او بي پرواه زړه څخه وي».

[سلسلة أحاديث صحيحا

ورسـره د دُعـا په وخت کي د دُعـا نیت په زړه ک
حاضرول او عاجزي کول هم مه هیروه. کیداي شي چه ال

تعالی مونږ ته نفعه راکړي او په خپل ذکر او دُعا مونږ اوچت کړي..

په آخر کي ستاسي نه دا درخواست دي چه هر چا دا رساله تیاره کړي ، یا لیکلي یا پښتو ژبي ته اړه ولي ده، دهغوي لپاره د زړه له اخلاصه دُعا وکړي.

وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وأصحابه أجمعين

والسلام عليكم ورحمة الله وبركاته

إداره أوقاف

صالح عبدالعزيز الراجحي

# مسائل وفضائل

## بلغة البشتو

مرتب ومترجم

## حافظ نور أحمد دين

مطبعة دار طيبة - الرياض - ت: ٤٢٨٣٨٤٠